سلسلۂ اولیاء سرحد

د ادبی ټولی صوبه سرحد اشاعت سلسله کښ

ع ۳۱

رحمة الله علیه

# تور ډهیری بابا

لیکونکے :- نصر الله نصر

دوېم ځل :— نومبر سنه ۱۹۵۲ء

خورونکے :-

د ادبی ټولی صوبه سرحد لوئ مرکز پیرتهکال (پېښاور پاکستان)

پته :-

دفتر ضلع ادبی ټولے اندرون کابلی دروازه بابو حیدر روډ

پېښاور ښهر

قیمت —— ۲/ —— دوه آنے

تعداد —— پنځه سوه (۵۰۰)

(سرحد پریس پېښاور کښې چاپ شو)

(فضل ودود کاتب)

# مآخذ


(۱) تاریخ پشاور

(۲) کیمبرج شارٹر ہسٹری آف انڈیا

(۳) دیوان احمد شاہ ابدالی

(۴) دَ پښتو نخوا دَ شعر هارو بهار

(۵) حیات افغانی

(۶) خورشید جہان

(۷) سراج التواریخ

# دَتورډهیری باباصاحبؒ

دَ تورډهیری بابا اصلی نوم حضرت ګل محمدؒ صاحب دے۔ په میاں ګلو بابا ؒ مشهور دے۔ بعضے خلق ورته میاںګل صاحبؒ وائی۔ دَ پلار نوم ئے مراد صاحب دے " سنه ۱۸۶۹ء لغایت سنه ۱۸۷۴ء کښې کپتان اے جی هسټنګز او رائے بهادر منشی ګوپالداس ایکسټرا اکسټنټ تاریخ پېښاور کښې په صفحه ۳۳۴ دَ میاں ګلو بابا ذکر دَ حضرت کاکا صاحبؒ رحمکار مریدانو کښې کړے دے ئے هم لیکلی دی چه دَ نارو۔ چنبل (سپونړې) او داءُ الفیل مرضونو دَ مولو اذن ورته کاکا صاحبؒ کړے دے او کومه زمکه چه میاں ګلو بابا په خپله کوله دَ هغه زمکے خاوره دَ هغه نمسی په مریضانو لګوی بنجه پا وه (رنځ) شکرانه ترِ آخلی"۔

دَ میاں ګلو بابا نمسی وائی چه حضرت ګل محمد صاحبؒ دَ ننګرهار دَ دره چپریال شغلانے کلی حضرت پوردل صاحبؒ ته بیعت کړے وُو دا بزرګ ئے نزدے خپلوانو کښې وو۔ خپل پیر ورته دَ تورے دَ جنام او دَ هر قسم مردارو دانو دَ مولو اجازه ورکړے وه۔ دَ ننګرهار

نه سره د یال بچه د یوسفزو علاقې طوروکلي ته راغلي وو. د
طورونه بیا تور ډهیري ته لاړو د ګجرانو همسایه شو. مونږ
له به د هغو جماعت ته تلو. د دانو مریضان به ورله هم هغه
جماعت ته راتله د مول به. څه موده پس ورله یو خان د غه
کلي کښې یو ارهټ او شپږ کناله زمکه سیرۍ ورکړه ګل محمد
صاحب به د غه سیرۍ په خپله کوله. ځان له ئې بیل جماعت
جوړ کړو. په ۲۰ ستمبر سنه ۱۹۵۱ء د حضرت ګل محمد صاحب
نمسي غلام قادر صاحب یو چهټۍ کښې ما ته لیکلي وو چه حضرت
ګل محمد صاحب د کاکا صاحب مرید نه وو. ځکه چه کاکا صاحب
د اورنګزیب زمانه کښې تېر شوی دی. د اورنګزیب او احمد شاه ابدالي
زمانه کښې د سلو کالو نه زیات فرق دے نو بیا حضرت ګل محمد صاحب
ئې څرنګه مرید شو. زما په خیال غلام قادر صاحب د خط لیکلو وخت کښې دا
خیال کړے دے چه په کومه ورځ احمد شاه ابدالي بادشاه شوے دے هغه ورځ
حضرت ګل محمد صاحب پیدا شوے دے. حقیقت دا دے چه حضرت ګل محمد
صاحب د احمد شاه ابدالي زمانه کښې ډیر زیات معمر وو او د هغه د بادشاهۍ
زمانه کښې وفات شوے دے. بله دا چه د اورنګزیب او احمد شاه ابدالي زمانه
کښې د سلو کالو نه زیات فرق نه دے بلکه صرف څلوېښت کاله دے
یعني د تاریخ په حساب اورنګزیب بادشاه په سنه ۱۷۰۷ء کښې وفات شوے دے
او احمد شاه په سنه ۱۷۴۷ء کښې بادشاه شوے دے. دا خو هم ډېره

مشهوره خبره ده چه د پخوانو خلقو عمرونه په نسبت د شلمې صدۍ د
خلقونه زیات وو مثلاً اورنګزیب مغول هندوستان بادشاه ډېر عمرونه
ئې په سر کړو طول عمرئې جنګونو او غزاګانو کښې تېر کړے وو. سره د
دومره تکلیفونو بیا هم د یو کم سلو (۹۹) کالو عمر کښې وفات شویدے
دغه رنګ د بزرګانو عمرونه به هم اوږده وو. د بزرګانو تاریخونو نه
هم دا ثابته شوې ده چه ډېر بزرګان د سلو کالو عمر نه زیات عمر کښې
وفات شوي دي. اوس که د تاریخ پېښاور په حواله که دا او وایو چه
حضرت میاں ګلو بابا (ګل محمد صاحب) د حضرت کاکا صاحب مرید وو نو
عقل ئې مني. کیدے شي چه حضرت ګل محمد صاحب د شپږو شلو یا له دې نه
زیات عمر کښې د دے فانی دنیا نه سفر کړے وی. فرض که که دومره زیات
عمر کښې وفات شوے وی نو بیا خو به ئې د حضرت کاکا صاحب نه
لاس نیوه کړې وی. ځکه چه کاکا صاحب د خپلې زمانې ډېر لوئ
ولی او بزرګ وو. د لرې لرې ملکونو نه به ورله خلق راتله. د
تورډهیری او د کاکا صاحب د کلی منځ کښې خو د شلو میلونه
هم کمه فاصله ده. نو بیا حضرت ګل محمد صاحب عنونیک
سړی به د کاکا صاحب رح نه بیعت وے نه وی کړے. یو روایت
تورډهیری کښې دا هم مشهور دے "چه کله وخت احمد شاه
ابدالی رح د پانی پت دریم جنګ له تلو نو ځمکنو کښې ورته حضرت
میاں عمر صاحب اووے چه د تورډهیری ګل محمد صاحب ډېر لوئ

بزرګ دے۔ دَهغه نه هم دعا واخله۔ احمد شاه ابدالی رح تورډهیرې
ته راغے۔ حضرت ګل محمد صاحب رح ورته دعا اوکړه ورته ئے وے چه خدائے
به فتح درکړی۔ خَمارَنبے به هم پکښې چلیږی۔ روایت کښې وائی چه دَ
پانی پت په میدان احمد شاه مرهټانو سره جنګیده و نو دَ
ګل محمد صاحب رح په رنبی به دَ مرهټانو سرونه پریکیده۔"
دا روایت ما چرته تاریخونو کښې نه دے لیدلے او نه دَ
حضرت میاں عمر صاحب رح مناقب کښې شته۔ خَما په خیال
حقیقت به دا وو چه حضرت ګل محمد رح او دَ هغه مریدان
به دَ احمد شاه رح لښکر سره دَ پانی پت غزاله تلی وی۔ حضرت
ګل محمد رح به دَ وسلے نه علاوه خپل رنبے هم ځان سره اوړے
وی۔ ځکه چه هغه زمانه کښې تو پکونه خو هرچا سره نه وو۔ ځکه
چه اتلسمه صدئ عیسوی کښې وی۔ لاس په لاس جنګ کښې
به ئے مرهټیان پرے وژلی وی۔ خو روستو بیا خوش اعتقاد
او عقیدتمندو مریدانو دا خیال کړے دے چه دَ حضرت ګل محمد رح
غوندِ لوئ بزرګ جنګ ته دَ تلو څه حاجت وو۔ دَ هغه تش رَنبے
هم دَ مرهټیانو دَ پاره کافی وو۔ رو روئے ترِ دغه روایت
جوړ کړو۔ کوم چه دَ تورډهیری دَ خلقو په خوله دے۔ دغه روایت
کښې دا ته دا خبره هم غلطه ښکاری چه حضرت میاں عمر رح
احمد شاه ابدالی رح ته او وے چه دَ تورډهیری حضرت ګل محمد رح

نه رعا او غواړه . ځکه چه صوبه سرحد ردده ) دَ احمد شاه قبضه
کښې وو . دَ خپل رعیت نه ښه واقف وو . چونکه هغه په خپله
هم بزرګ وو نو دَ خپل وطن بزرګان خو به ورته ښه معلوم وُو
علاوه له دے نه دَ پانی پت جنګ له چه تلو نو دائے پېښاور ته دَ
را تلو ړو چے ځل نه وو . بلکه دے نه اول څو څو کرته دَ پېښاور
په لارے پنجاب او هندوستان ته تلے وو . دَ سرحد خلق ورسره
ملا تړ کښې غزا لکا نوله تلی وو . مثلاً ۱۷۳۹ء کښې نادرشاه
بادشاه سره دهلی پورے تلے وو . دنادرشاه دَ مرګ نه پس
چه ۱۷۴۷ء کښې په خپله دَ افغانستان بادشاه شو نو ۱۷۴۸ء
کښې خپل لښکر سره دَ سرحد غازیان ملګری کړه په پنجاب
ئے حمله اوکړه سرهند شریف ته چه اورسیدو نو واپس
شو . ۱۷۴۹ء کښې بیا دَ افغانستان نه راغے . دَ سرحد
خلق ئے ځان سره کړه پنجاب ئے فتح کړو . دَ اباسیند
په دواړه غاړه چه کوم کلی آباد وو . دَ هغه کلو دوره ئے اوکړه
دَ دغه کلو خلقو سره ئے لیده اوکړه چونکه تور ډهیرے .
کلے هم دَ اباسنده غاړے ته نزدے دے نو ضرور به ئے
حضرت کل محمد رح سره ملاقات کړے وی .

دے نه پس ۱۷۵۲ء کښې پنجاب ته لاړو دَ سرحد دَ خلقو
نه ئے ځان ښه واقف کړو .

سنه ۱۷۵۶ء کښې چه د دهلي مغل بادشاه عالمګیر ثاني پنجاب باندې حمله اوکړه نو احمد شاه ابدالي رح غصه شو. خپل د افغانستان لښکر سره ئې د سرحد غازیان مل کړه. دهلي پورې ملکونه ئې فتح کړه د دهلي په تخت ئې قبضه اوکړه. د قبضه نه پس ئې دوباره د دهلي تخت مغل بادشاه ته او بخښلو. واپسئ کښې د پېښاور په لار افغانستان ته لاړو. کیمبرج شارټر هسټري آف انډیا کښې په صفحه ۵۷۷ کښې لیکلي دي چه هندوستان کښې د مرهټیانو د ظلمونو نه مسلمانان ډېر تنګ شو او دهلي باندې ئې قبضه کوله نو د هندوستان مسلمانانو احمد شاه ابدالي رح د مرهټیانو د ظلمونو نه خبر کړو. احمد شاه ابدالي رح سنه ۱۷۵۹ء کښې د افغانستان نه د سرحد په لار د مرهټانو د ځپلو د پاره پنجاب ته لاړو. خان سره ئې د سرحد غازیان هم ملګري کړل. ممکن دې داخل هم ورسره حضرت ګل محمد صاحب رح هم تلي وي. ځکه چه دا د هندو مسلمان جنګ وو. احمد شاه ابدالي رح خپل لښکر دوه کاله پنجاب کښې اوساتلو. پنجاب کښې ئې سکهان او دهل او کشمیر ئې فتح کړو. بیا دهلي ته روان شو. جنوري سنه ۱۷۶۱ء کښې د پاني پت په میدان احمد شاه ابدالي خپل شپیته زر لښکر باندې

دَ مرهټیانو درې لکهه فوځ له شکست ورکړو. دوه لکهه مرهټیان
ئې مړه کړه. هندوستان کښې ئې دَ مرهټیانو طاقت ختم
کړو. دَ دهلی تخت ئې اونیوو. دوباره ئې پرې دَ خپلې خوښې
مغل بادشاه کړو. او خپله دَ سرحد په لاره افغانستان
ته لاړو. احمد شاه ابدالی رح چه څه وخت دَ غزا دَ پاره
هندوستان ته تلو نو دَ هزاره دَ نادر خوئ برهان
خان شاعر لاندینی اشعار لیکلی دی.

احمد شاه بادشاه په غوره وویله
دَ غزا په نیت ځمه له کابله
پښتنې مغلې لاندې کړې کفارو
دا خبره م په زړه وُ کړزیدله
یا به ننګ دَ پښتنانه بیرته په ځائې کړم
یا به بائیلم ککرئ پرې بانږ خپله
دَ اټک په سیند ئې دوه پُله تیار کړل
بادشاه پریوت په ما بجه ئې میشته کړله
هر سپاهی ئې تر نیځوتنه کم نه وو
دَ روتاس دټئ بې جنګه واخستله
مخامخ شو جنګ ئې خښن کړو په میدان کښې
دو رُخه ئې توپخانه وُ چلوله

سمتن خان مومن خان دواړه شهیدان شول
احمد شاه دَ زړه ئے ستن ونړوله
ادوه ورزے وه تیاره بیا رنړائی شوه
دَ باهو زغره ئے په دینو ولړله
مریتئے په لور دَ غم نارے سورے شوے
دَ پښتون توره ئے هله و منله

دَ حضرت ګل محمد رح دعویٰ۔

پنجاب کښې امیر خان شکر خان وغیره دَ حضرت ګل محمد صاحب رح او دَ هغه دَ تربورانو جائداد باندې قابض شوی وو۔ حضرت ګل محمد صاحب پرے دعوے اوکړه شیخ الاسلام محمد صالح الکوزی دا فیصله دَ حضرت ګل محمد رح او دَ هغه دَ تربورانو حق کښې اوکړه۔ دَ دے فیصلے په سر دَ شیخ الاسلام محمد صالح قاضی عبدالرسول ابن ابراهیم قاضی ادریس او قاضی درانی مهرونه لګیدلی دی۔ دَ چمکنو دَ میاں عمر رح ګواهی هم پرے شته۔ دَ حضرت میاں عمر صاحب رح دستخط په دا نشان دے (محمد بشارت عرف چمکنی ګو اشد) دا فیصله په کال ۱۵۔ رجب المرجب سنه ۱۱۷۷ھ (سنه ۱۷۶۳-۶۴ع) کښې شوے ده۔

# معافی نامه :-

سنه ۱۱۷۸ھ (سنه ۶۴-۱۷۶۵م) کښې محمد جنګ د حضرت ګل محمد" تور ډهیری کښې یو اړهټ او درسره زمکه د مالیه وغیره نه معاف کړې وه. د هغه معافی نامې سند فارسئ ژبه کښې دې دائے نقل دے :-

" مقرر شد آنکه چوں فضیلت پناه میاں ګل محمد مرد فقیر و عاجز است لهٰذا از روئے شفقت و مهربانی یک دهن چاه که میاں مذکور در موضع تور ډهیری میخورد بابت قلتنګ و کنال وغیره تکالیف دیوانی ابتداء فصل خریف تحاویل مال معاف نموده شد که وجه نسبت حضرت را بے سبب اشتغال داده متصدیان سرکار و کارپردازان مال و استقبال موازی یکدهن چاه مذکور را معاف دانسته به هیچګونه بمشارٌ الیه مزاحمت نه رسانیده ونګذارند که حاصل آن را فعل به فعل صرف مایحتاج خود نموده پنجګانه به دعاګو پردازد درین باب تدغن بلیغ دانسته بعمل تواند

پښتو کښې د محمد جنګ د معافی نامې د سند مطلب دا دے :- " جناب میاں ګل محمد یو فقیر او عاجز سړے

دے تور ډهيرئ کښې چه ددئ ډکوم ارهټ آمدن خوړئ ډدے ارهټ ماليه وغيره ډفصل خريف ډشروع نه معاف شوه او ددوئ ته به آينده ډپاره ډهيڅ قسم تکليف ډحکومت له خوانه ڼسی۔ ډدے ارهټ آمدن بانددے خپل ضروريات پوره کوی پنځه وخته دعاگويه به وی په دے باب کښې تاکيد او کړے شو۔

**وفات:۔** حضرت گل محمدؒ په ۱۰، رمضان سنه ۱۱۸۰ھ (سنه ۱۷۶۷-۶۶ء) کښې وفات شويدے۔ تور ډهيری کښې ښخ دے۔ ډلرے لرے ملکونو نه زيارت له ئے خلق راځی۔ ډصوبه سرحد لويو بزرگانو کښې حسابيږی تاريخ پښاور کښې په صفحه ۳۷۴ کښې په داشان ليکلی دی:۔

ډمياں گل بابا زيارت کچه دے۔ تخميناً ډسلوکالو زيارت دے۔ خان محمد ئے بانی دے۔ په دے زيارت ميله نه لگی۔ او نه ډزيارت څه خاص آمدن شته

گنبد:- دَ حضرت کل محمدؒ په زیارت گنبد جوړولو بانده دَ ۱۰۰ اکوړی یو ترکاڼ او دَ حضرت کل محمدؒ غسو ۱۸۹۸ء کښې شروع کړے وه۔ میا نګانو صاحبانو دَ زیارت دَ یو کال شکرانه گنبد جوړولو ته وقف کړے وه لیکن دوئ گنبد جوړ نکړے شو۔ دَ گنبد کار ئے نیمګړے پریښو۔ حاجی ابراهیم میمن چه دَ حضرت کل محمدؒ دیر زیات عقیدتمند وو دَ حلیم کل میاں صاحب په وساطت ئے ۱۹۱۷ء کښې دَ حضرت کل محمدؒ په زیارت گنبد جوړولو بانده لاس پورے کړو گنبد لپاره ئے پخے خښتے دَ کیمبل پور او نوښهر چهاونړئ نه راوړے۔ باقی دَ او سپنو وغیره سامان ئے دَ ورله دَ بمبئ نه راوا ستولو۔ دَ حضرت عبد الغفور مستری به پکښې کار کولو۔ ۱۹۲۰ء کښې گنبد جوړ شو۔ تقریباً اویازره روپے پرے اولګیدے۔ دَ دے نه علاوه حاجی ابراهیم حلیم کل میاں صاحب له پوخ کوړ او دَ حضرت کل محمد صاحب جماعت هم جوړ کړو۔ ابراهیم صاحب ۱۹۵۰ء کښې وفات شویے۔ خدائ پاک دِ اوبخښی۔

ځامن:- دَ حضرت میاں کل محمدؒ څلور ځامن وو دَ یو نوم میاں جان محمد دَ بل نوم میاں خان محمد دَ دریم

نوم میاں فتح محمد او دُریم نوم میاں خیر محمد۔ خدای پاک دِ دغه څلور واړه او بخښي۔ دَ دوی اولاد او سه پورې دَ تور ډهیری حضرت ګل محمدؒ په نمسو مشهور دی۔

دزیارت شکرانه :- دَ حضرت ګل محمدؒ دَ زیارت شکرانه دَ میاں جان میاں خان محمد میاں فتح محمد او میاں خیر محمد نمسو خپلو کښ په څلورو حصو کښ تقسیم کړیده۔ میاشت کښ څلور واړه مقرر کړیدی یو وار یوه هفته دی یعنے اوه ورځے۔

سیرئ :- دَ حضرت میاں ګل صاحب او دَ هغه دَ نمسو سیرئ ضلع مردان کښ په طورو، معیار، قاسمی ګیت۔ بخشالے۔ ګجرات۔ ساول ډهیر۔ منا کے۔ سپین کانړے لاهور۔ او تور ډهیری کلی کښ دی۔ تور ډهیری کښ دَ حضرت ګل محمد اوه ټ او ورسره زمکه او سه پورې دَ هغه دَ نمسو قبضه کښ ده۔ دے نه علاوه دَ کلی نه شمال طرف ته چه کومه سیرئ ده۔ هغے کښ ۱۳ کناله زمکه جهانګیره صوابي روډ ۱۹۱۳ سنه کښ لاندِ کړیده۔ ۳۸ کناله زمکه دتور ډهیری ګورداس هندو دَ میانګانو نه په بیعه آخستے ده۔ څه زمکه کښ دَ کلی قبرستان دے۔

دَ میاں خان محمد نمسو قبضه کښ ډهیرے سیرئ دی

بخشالی گجرات اوساوله ډهیر کېنې سیرو باندې د میاں خیر محمد
نسی قابض دی. د کېبت کلی سیرۍ باندې د میاں جان
اولاد قابض دے.

غلام قادر صاحب وائی چه تورډهیرۍ سره نزدے تانون
کلی احمد شاه ابدالیؒ د خمکنو میاں عمر رح او حضرت کل محمدؒ
ته سیرۍ ورکړې ده. د ډیر تکیانو زمانه کېنې د دے کلی د
ز مکے انتقال د تانون کلی خلقو ځان لپسے په تکیٔ خیژولے
دے.

طاعون:- طاعون ډیر خطرناک مرض دے. یو بل ته
لګی. شروع کېنې دا مرض خلقو ته د مږ ونه لګی. پښتو
ژبه کېنې دے مرض ته توره دانه وائی. دا توره دانه غمخه
کېنې را خیژی.

۱۹۲۳ء کېنې دا مرض د پنجاب نه صوبه سرحد ته راغلے
وو. صوبه سرحد کېنې پرے په زرګونو خلق مړه شوی وو
د دے مرض کوم مریضان چه د حضرت کل محمد صاحبؒ
زیارت ته رارسیدلی وو. هغو کېنې زیات مریضان
خدائ تعالیٰ جوړ کړی وو.

تمت

# دَ ادبی تولی صوبه سرحد

# مَقاصَد

(۱) دَ پښتو ادب له ترقی ورکول۔

(۲) پښتنو ځلمونه دَ تقریر کولو چَل ښودل۔

(۳) اَمیانو ته په پښتو، اردو، عربي۔ انګریزی او فارسی ژبه کښې حساب او لیکل لوستل علم و هنر ښودل۔

(۴) کلو کښې دَ کتب خانو او اخباراتو اِنتظام کول۔

(۵) دَ پښتو ښه ښه نظمونه او نثر ښه مضامین قوم ته دَ کتاب په شکل کښې پیش کول۔

۷۸۶

سلسلۂ اولیاء سرحد

د ادبي ټولی صوبه سرحد اشاعت سلسله کښې

ع ۳۲

# حضرت شیخ محمد شعیب رحمة الله علیه

(تور ډهیري)

لیکونکے :- نصر الله خان نصر

خوره ونکے :-

د ادبي ټولی صوبه سرحد لوئ مرکز برتهکال پېښاور

(پاکستان)

ډومبے ځل ———— جنوری سنه ۱۹۵۳ء

پته :-

دفتر ضلع ادبي ټولے اندرون کابلي دروازه بابو حیدر روډ

پېښاور ښهر

قیمت : ———— دوه آنے ۲ر

سرحد پریس پشاور

# ماخذ

(۱) مِرآۃ الاولیاء
(۲) دیوان عبد العظیمؒ بابا
(۳) تاریخ افغانستان (سید جمال الدینؒ افغانی)
(۴) تاریخ صوبہ سرحد
(۵) دَ پښتنو تاریخ قاضی عطاء اللہ
(۶) ہری سنگھ نلوہ
(۷) تاریخ ہزارہ
(۸) پنجاب ریکارڈ

# حضرت شیخ محمد شعیب صاحب رحمۃ اللہ علیہ

**قام:-** حضرت شیخ محمدؐ شعیب صاحبؒ په قام دُرانی وو- احمد شاہ دُرانی چه تندهار کښې د بادشاهۍ اعلان سنه ۱۷۴۷ء کښې اوکړو د بادشاهی تنظیم کولو نه پس د غزا په نیت سنه ۱۷۴۸ء کښې د قندهار نه د هندوستان په طرف خپل لښکر سره د سکهانو هندوانو مقابلې د پاره روان شو نو دغه لښکر کښې د حضرت محمدؐ شعیب صاحبؒ پلار حضرت رفیع القدرؒ عرف حافظ ګل صاحبؒ او نیکه حضرت اخون غازی بابا رحؒ هم وو- احمد شاه درانی هندوستان کښې سرهند شریف پورې هندوانو سکهانو سره اوجنګیدو- د غزا نه پس چه خپل وطن ته واپس تلو نو سرحد (دوه) کښې د دوئ غزا د غرض د پاره د خپل لښکر ډیر پښتانه پریښوه- دغه خلقو کښې حضرت اخون غازی بابا رحؒ او ددهٔ ځوئ حافظ ګل صاحبؒ د یوسفزو علاقه کښې پاتې شوه

**تورډهیري:-** حضرت حافظ ګل صاحبؒ ابا سیند ته نزدې تورډهیری کلی کښې آباد (میشته) شو- حافظ ګل صاحبؒ ډیر لوئ عالم متقی او پرهیزګار سړے وو- د غزا ډیر شوقی وو- همیشه به غزاګانو کښې شامل وو د خپل اولاد تربیت ئې په داسې ښه شان سره اوکړو چه دهغوئ هم

دَ پلار په قدم قدم کيښنوه. دَ ځمکنو حضرت ميان عمر صاحب سره ئې دوستي وه. ځکه به چه ځمکنو ته دَ خپل دوست ليدو له تللو نو حضرت محمد شعيب صاحب به هم ورسره دَ پاره شان سره بوتللو حضرت ميان عمر صاحب به چه محمد شعيب صاحب ته په سر لاس راښکلو نو دا به ئې اکثر وے. "دے هلک نه به خدائے پاک لوئ سړے جوړ ئې" محمد شعيب صاحب چه لوئ شو. دَ پير کامل په تلاش کښې شو.

**حافظ محمد** رح هغه زمانه کښې دَ هشتنګر عمرزو کلي دکلي (هيرو) حضرت حافظ محمد رح ډير لوئ عالم او بزرګ سړے وو. دَ قرآن شريف حافظ هم وو. حضرت محمد شعيب صاحب تود ډهيرۍ نه عمرزو ته راغے. دَ حضرت حافظ محمد رح درس کښې شامل شو. حضرت حافظ محمد بونير کښې دَ بشونړئ کلي حضرت محمد صديق صاحب ماذون وو. محمد صديق صاحب دَ بيښاور محمد جنيد رح مريد وو. او دَ برتهکال دَ حضرت ماموں يوسفزئ دَ ماذون محمد نعيم رح هم مريد وو.

**لاس نيوه** :- ځه موده پس حضرت محمد شعيب صاحب تر قادريه او نقشبنديه طريقو کښې لاس نيوه او کړه. عمرزو کښې دَ خپل پير دَ حکم مطابق چيلے او وليښتے. دَ سلوک قول سبقونه ئې دا دپه وار سره شان سره زده کړه. هر عمل به ئې دَ شريعت دايره کښې دننه کولو. دَ حرامو او بدو کارونو نه به ئې ځان سا تلو. هر کار به ئې دَ خدائے دَ رضا دَ پاره کولو. الله تعالیٰ پرے خپل فضل او کړو. دَ زړه صفائي ئې پيدا شوه. روحانيت پکښې پيدا شو. مخ ئې

لکه دستورئ زلیدهٔ شروع کړهٔ - چابه چه اولیدو بیا به ئې زړهٔ
نه کیدو چه د بل چا مخ ته اوګوری - ورکوتو به هم دا کوشش کولو
چه دے دیتو - د بزرګئ مقام ته چه اورسیدو خپل پیر پرے هم مهربانه
شو - خلیفه او **ماذون** ئې کړو - او تو دهیرئ ته د تلو اجازت
ئې ورکړو - حضرت محمد شعیب صاحب رح تو دهیرئ ته راغے -
**امر معروف** ته دینی مدرسه ئې جوړه کړه - امر معروف د یوسفزو
علاقه کښې شروع کړو - د شریعت نه خلاف کارونو نه به ئې خلق
منع کول - وعظ کښې ئې ډیر زیات تاثیر وو - چابه چه ئې وعظ واوریدو
هغه به پرے ضرور عمل کولو - خپلو پیر بابا نو کښې د تولو نه لویه مرتبه
خدائ پاک دهٔ له ورکړه - دهٔ خپل ژوند [illegible] کښې د اسلام ډیر
زیات تبلیغ اوکړو - د پیرئ مریدئ سلسله کښې چه کمال
ته اورسیدو - حضرت حافظ محمد رح د دے فانی دنیا نه په
۲۶ ربیع الثانی سنه ۱۲۰۶ھ مطابق دسمبر سنه ۱۷۹۱ء کښې د
احمد شاه بادشاه ځوئ تیمور شاه بادشاهئ کښې سفر اوکړو
د بد قسمتئ نه تیمور شاه د پلار غوندے بهادر نیک سیرت سیاستدان
او هر دلعزیز بادشاه نه وو - ډیر زیات شهوت پرست وو -
درے سوه ښځے ئې کړے وے - د دغه ښځو نه ئې ۳۲ ځامن وو
د پېښاور بالا حصار قلعه کښې اوسیدو سخت عیاش وو - پېښاور
کښې ترے خلیل مهمند او داؤدزی ډیر زیات خفه وو - یو ځلے
دغه تومونو سنه ۱۷۷۹ء کښې د ځمکنو حضرت میاں عمر صاحب رح په

حکم تیمور شاه پانډے حمله هم کړے وه - په بالا حصار قلعه ورختي دوه
مړه کولوئے خولا پوره ئے نه وه راغلے تر نه پچ شو - روستو بیا په خپل
مرګ د ۲۲ کالو حکومت کولو نه پس سنه ۱۷۹۳ء کښې مړ شو - دَ ده دَ
مرګ نه پس دَ تخت حاصلولو دَ پاره ځامنو ئے خپل مینځ کښې جنګونه
شروع کړه - ټول ملک کښې بدامني شوه - په زرګونو مسلمانان
دَ دوئ خانه جنګو کښې مړهٔ تباه و برباد شو - همایون زمان شاه
محمود ایوب فیروز الدین او شاه شجاع دَ خپل نیکه احمد شاه
دراني، لوئ مضبوط اسلامي سلطنت چه پکښې دَ افغانستان
سنده بلوچستان پنجاب او دَ کشمیر ملک وو - په لږه موده
کښې کمزورے او ټکړے ټکړے کړو - سره دَ دے چه زمان شاه
محمود او شاه شجاع وغیره په افغانستان حکومتونه هم
کړي وو - لیکن په ځائے د فائدے ئے خپل وطن ته نقصان
رسولے وو - دوئ دَ خپل اِقتدار حاصلولو دَ پاره دَ افغانستان
هوښیار قوم پرست خلق وژلي وو - رعیت کښې اسلامي قومي
او دَ اِتحاد جذبه دَ خانه جنګو په وجه نه وه پاتے شوے - دینه
علاوه عزیزان شوي هم وو - سکهانو چه دَ پښتنو دَ تباهۍ
نه او کتل نو دَ خپل حکومت جوړولو خیال ورته پیدا شو -
زمان شاه چه سردار رنجیت سنګهه ته لاهور بخښلے وو
دَ خود مختارئ اعلان او کړو - پنجاب کښې د سکهانو حکومت
جوړ کړو - دَ تیمور شاه ځامن چه نااهل ثابت شول نو دَ

افغانستان خلقو ترې بغاوت اوکړو۔ دَ سردار پائنده خان
ځامنو یعنې دوست محمّد خان، عظیم خان، سلطان محمد خان
پیر محمد خان، یار محمد خان وغیره دَ افغانستان سلطنت
باندې په زور قبضه اوکړه۔ دا ملکِ خپلو کښې اوویشلو
دَ بې قسمتۍ نه دا رونړه هم خپلو کښې یو بل ته ډیر زر دښمنان
شو۔ پرې کوندۍ جوړې کړې۔ سِکهانو ترِ ملتان کشمیر
اوټول پنجاب په زور اونیولو۔ دغه ملکونو کښې مسلمانانو
تې تنګ له راوستل۔ بانګ وئیلو ته به ئې نهٔ پریښودو
دَ غوا حلالولے ئې پورے بنده کړه۔ او دغه بونګ نور دینی
اسلامی کارونو نه ئې منع کړی وو۔ بیګارونه به ئې
پرې کول۔ حضرت محمّد شعیب صاحب رح چه دُ تیمور شاه
اودَ سردار پاینده خان دَ ځامنو دَ لاسه دَ احمد شاه دَ
اسلامی سلطنت تباهی اولیده نو میدان ته راااووتو
یوسفزو کښې هغه کسانو سره مَل شو۔ څوک چه دَ سکهانو
دښمنان وُو۔

**جهاد:۔** دَ جهاد تبلیغ ئې شروع کړو۔ په زرګونو خلق
ئې جهاد دَ پاره تیار کړل۔ سردار عظیم خان دَدا سے موقعے
په انتظار کښې وو۔ ځکه چه سِکهانو سردار عظیم خان
نه سنه ۱۸۱۹ء کښې کشمیر په زور آخستے وو۔ سکهانو بانډِ
دَ حملے دَ پاره تیارے کابل کښې شروع کړو۔ سکهانو چه

دَ یوسفزو اسلامي جذبې ته اوکتل. څه نوځ ئې دَ اټک
قلعه کښې واچولو. او څه ئې دَ اباسینډ په غاړه دَ یوسفزو
علاقې ته مخامخ ډیره کړو. دغه لښکر درې کاله دَ اباسینډ
په غاړه پروت وو. دَ حضرت محمد شعیب صاحب او دغه رنګ
دَ نورو کسانو دَ پراپیګنډو (مشمشي) په وجه دَ صوبه سرحد
دَ سیمې او دَ غزو نو خلقو سکهانو ته نفرت پیدا شوې وو او
دغه مسلمانانو سره ئې ډیره مذهبي همدردي پیدا
شوې وه. کوم چه دَ سکهانو ما تحت وو. سردار عظیم خان
له ښه موقعه په ګوتو ورغله.

**دَ غزا اعلان**:- دَ غزا اعلان ئې اوکړو. دَ کابل نه ئې
سکهانو پسې لښکر اوکړو. چه پېښاور ته راورسیدو. دَ
خلیلو مهمندو غازیان هم ورسره شامل شول. یوسفزي
چه دَ سردار عظیم خان دَ راتګ نه خبر شو. دَ غزا دَ پاره ئې
لښکر تیار کړو. مهاراجه رنجیت سنګه چه دَ سردار
عظیم خان دَ لښکر نه خبر شو. دَ دهٔ رور یار محمد خان ئې
دَ خان سره پټ ملګرې کړو. مقابلې دَ پاره ئې دَ سکهانو
لښکر نوښهره ته واستولو. دَ یوسفزو لښکر نوښهره ته
راورسیدو. حضرت محمد شعیب صاحب رح هم ورسره وو
دَ نوښهره او پیر سباق منځ کښې دَ لنډې سیند په کسه
غاړه ئې مورچې جوړې کړې. دَ سردار عظیم خان لښکر

اهم نو ښوونه دا ورسپېږي. دے لښکر سره ډیوسفزو لښکر ملګرے شو. په ۱۴ مارچ سنه ۱۸۲۳ء مطابق سنه ۱۲۳۸ هـ د سکهانو او مسلمانانو لښکر جنګ شروع کړو.

جنګ:- په دغه ورځ غازیانو سکهانو سره لاس په لاس جنګ اوکړو. غازیانو کښې چه د چا توره به ماته شوه او نوره ځه به ورسره نه وو نو په تش لاس به سکهه ته ورغاړه وتو. په چکو نو به ئې خواړه. بے شماره سکهان ئې مړه او ژوبل کړل. د سکهانو وار خطا شو. تیښتې ته تیار شو. مهاراجه رنجیت سنګه چه د خپل لښکر د حقیقت نه خبر شو نو په خپله میدان ته جنګړه په لاس تازه دم لښکر سره جنګ له راغے. پهولا سنګه سردار د غازیانو مخے ته ورغے. جنګ ئې شروع کړو. ښه په خوا مردئ سره او جنګیدو. خو د غازیانو د لاسه ئې پوره راغلے وه. جنګ کښې مړ شو. سکهانو د پهولا سنګه په مرګ ډیر زیات خفګان اوکړو. مهاراجه رنجیت سنګه چه پوئ شو چه په زور فتح نه شم مونده نو یار محمد خان سره ئې راز باز شروع کړو. ډیوسفزو په لښکر ئې حمله اوکړه. په دغه ورځ ډیوسفزو د لښکر د امداد د پاره د سردار عظیم خان او یار محمد خان لښکر راغے. د یوسفزو لښکر ښه په بهادرئ سره جنګ اوکړو. ډیر

غازيان پکښې شهيدان او ژوبل شو. دَ يوسفزو لښکر چه دَ
سردار عظيم خان او يار محمد خان بے ننګئ ته او کتل نو ډير
زيات خفه شو. جنګ ئے په ځائے پرېښو. خپل مړي او زخميان
ئے خپلو کلو ته يوړه. دغه جنګ کښې حضرت محمّد شعيب
صاحب رح هم زخمي شوے وو. چه خپلے علاقے ته او رسيدو
شهيد شو. تورډهيري کښې ئے ښخ کړو. دَ سکهانو
لښکر عارضي طور سره په پېښاور قبضه اوکړه. سردار
عظيم خان کابل ته او تښتيدو. دُ برتهکال صوفي شاعر
حضرت عبدالعظيم بابا دُ پايئنده خان ځامنو پورے يو
غزل هغه وخت سره جوړ کړے وو. لاندينی درے شعرونه
دَ هغه غزل دی:-

خدائ ميشته کړه پېښاور کښې سکهان ځکه
بارکزو نه چه اِنصاف عدالت لاړ
دا يوازے پايئنده خان کړو خدائ بے يُمنه
که له واړو بارکزو شرافت لاړ
دَ غزا تورے ئے پرانستے له ملانه
په يو وارے مومنانو نه هِمت لاړ

دَ نوښهر دَ غزا حال مونږي شاعر هغه زمانه کښې
چاربيته کښې ليکلے وو. مونږ هغه چاربيته دلته
ليکو هغه داده:-

## چاربیته

قاصد د بادشاه راغی یوسفزی اولس زیږه
په نیت د غزا لاړشه په نوښهر اورڅیږه

قاصد د بادشاه راغی رالیږلے عظیم خان
د اوله ئے جرګه کړل مُلایان او ملکان
دا روکولئ په مادی ددکوم به خرڅ تاوان
الفاظ ئے خوږ شکر وو په هر چا اولګیده

الفاظ ئے خوږ شکر وو پرے راضی یوسفزی شوه
راتلل به ځائ تر ځایه نه ئے خوب نه ئے دمه شوه
خیل کور به هر چا اوړشو پیښه راسے علاقه شوه
توکل دُعائ اوکړه سیلاب ونه بهیده

توکل دُعائ وکړه اکوزی وو په ذرګونه
راتلل ئے مشران د سیند په غاړه لکه غزونه
د زغروئے ځلکے وے دوشالے ئے په سرونه
د حُسن په صفت ئے بادشاهان هم حسیده

ساتل به میند و خوینډو الله ورو ستل قضاله
اجل ئے په ډیرو وو دلته هسے لو تېده

اجل ئے په ډیرو وو اشینو اوکړله توره
رحمت په سلاو زوشه دُعائ کړه حضوره
مړان دی که یزی سرونه نه اړئ له تربوره

خاوندہ خدیخیل لہ پیښې کله تښتیدہ

دَ پیښې تهٔ جاداوزی نوریزی دی اکدران
مدام ئې صفت جنګ وی دَاوښکلو په میدان
دَ الله نوم چه یې واخست نو به مات شو نوسیکهان
دَ لښو دَ ګمتہ مئې ریخیت او و سیر یدہ

دَ نخښنو په ګمته کښ شهید شو یو یې خان
دَ قام په مخکښ مړۀ شو فیض طلب او لطان خان
شیر داد محب الله دوښه یې میرات شو سرود خان
اسمٰعیل زی دَ لوئې مولا سره تعلونه توښیدہ

اسمٰعیل زی دَ لوئ مولا په مخکښ مړه شو امانت
معصم او عادل شاه دِ الله کاندی په جنت
دَ اوښکلو جنګ ئې اوکړو په میدان کښ به حساب
په مړک ئې په آسمان کښ ملائک اوډ ریدہ

په زمکه ژاړی جو نه ملایک دی په آسمان
یو چړک به ناره په یوت اخوند خیل شو بندیوان
دَ مړکه پوړې پلار دَ حضرت دین کوی ارمان
میرات ئې پالنګو نه په میدان خاورې کیدہ

میرات ئې پالنګو نه په میدان شو لویوازې
ژاړی خویندې میندې کلی ئې کړې آغازې
دَ خاوروند شوې لانِ هغه بښې پکړی درازې

په صفت ئې موېږے لکه فولاد او لیشید ه

صفت د یوسفزو کوم چه قتل ئې کړو ځان
په مخکښې تمام شو پیر ملا او صاحبزادګان
په دوزخ کښې به کفار وی په جنت کښې مومنان

هر بیت د موتیږی لکه مرجان بیعه کیده

**رونړه:-** د حضرت محمد شعیب رح صاحب درے رونړه
نور هم وو. محمد اسلم ئې میړنے ووړ وو. محمد زبیر
او عزیز ئې سکه رونړه وو. د دوئ مور د صوابئ د
اخون صاحب رح لور وه.

**ځامن:-** د حضرت شیخ محمد شعیب صاحب رح دوه
ځامن وو. د یو نوم سعد الدین او د بل نوم صدرالدین
د درے دوئ ځامنو اولادے هشتنګر، سوات او یوسفزو
کښې دی. په صاحبزادګانو مشهور دی

---

نوټ:-
د نوښهر د غزا چار بیته ما د مرحوم قاضی عطاء الله صاحب
(سابق وزیر تعلیم صوبه سرحد) نه لیکلے ده. ۱۹۳۹ کښې قاضی صاحب
تهکال ته راغلے وو. ما ته ئې وے چه د نوښهر د غزا چار بیته ما د یوسفزو
د یو بوډها سړی نه لیکلے ده. هغه سړی عمر د سلو کالو نه اوړیدلے وو
لیکن صحت او یادداشت ئې ډیر ښه وو.

(نصرالله خان نصر)

دا شجره مکمله نه ده ۔ دَ کومو صاحبزادګانو چه ماته علم نه وو دَ هغو نومونه مې نه دی لیکلی۔

دَ حضرت محمد شعیب صاحب دَ دور محمد زبیر دَ مشرځوی قاضی فضل الله نمسی تور ډهیری کښې آباد دی دَ محمد شعیب صاحبؒ دَ زیارت خدمت کوی۔ او هغه جماعت پرے آباد دے کوم کښې چه به حضرت شیخ محمد شعیب صاحب عبادت کولو۔

نومبر ۱۹۵۲ کښې چه زهٔ تورډهیري ته لاړم - نو دَ قاضي فضل الله صاحب تمسو کښې عبد القدوس صاحبزاده دانه هو بنیاد کړې زه او خبرداده سړی بښکاره شو. دَحضرت شیخ محمد شعیب صاحب رح مریدانو کښې حضرت عبد الغفور رح (اخون صاحب سوات رح) ډیر لوئ بزرګ او غازي وو دَخپل پیر (محمد شعیب رح) په قدم ئے قدم ایښے وو- افغانستان صوبه سرحد کښې ئے ډیر ماذونان وو- یو څو یکښې دلته درج کیدے شي-

(۱) حضرت نجم الدین رح عرف هډے ملا صاحب رح

(۲) حمید الله رح عرف اسوڼا بابا رح

(۳) حضرت عبد الوهاب رح عرف مانکی صاحب رح

(۴) حضرت شیخ ولی الله صاحب رح (۵) حاجی احمد علی رح کابل-

(۶) حضرت خدا بخش رح (۷) حضرت فقیر الله صاحب رح کشمیر

(۸) قاضی سلطان محمود صاحب رح پنجاب-

(۹) عبد الحق رح (۱۰) تمکرے ملا صاحب رح

(۱۱) ګل احمد رح (۱۲) حضرت ابوبکر رح عرف پاسنی ملا صاحب رح

(۱۳) وزیر ملا صاحب وزیرستان رح

حقیقت دادے چه دَ حضرت اخون صاحب رح سوات ماذونانو کښې اکثر ماذونان غازیان وُو- مثلاً حضرت نجم الدین اخونزاده او بیا دَ دوئ ماذونان هم دَ خپلو پیرانو په شان غازیان وو-

حضرت محمد شعیبؒ
حضرت اخون صاحب سوات رحضرت عبدالغفورؒ
حضرت شیخ ولی اللہؒ تیراہ
حضرت محمد عمر شاہ کربوغہ
محمد الیاس بوتان تیراہ
حضرت نجم الدین ہڈے ملا صاحب
حضرت عبدالوہابؒ مانکی شریف
سلطان محمودؒ
احمد بخشؒ
عبدالشکورؒ رببر خاک
اسلام پور میر صاحبؒ جان باچا ، (عبید اللہ)
سید عباس باچاؒ
شیخ دین محمدؒ
شیخ محمد حسینؒ
صوفی عالم گل
ڈاکٹر زوجاجی صاحب فضل واحدؒ
حاجی محمد امین صاحبؒ
چکنور ملا صاحبؒ
بکاو اخونزادہ صاحبؒ
معصوم صاحبؒ
ڈسرکانڑ و میا صاحبؒ
انحری ملا صاحبؒ